# الهام دراز ملګری

**لیکوال: استاد نوراحمد قران مل**

**نیټه: ۱۴۰۱ عقرب ۱۶**

**موضوع : BP/Biography**

د پښتو نشریحې په نوم کتاب مې نیخه چې ۱۳۷۱ل کال وو او که تر هغه مخکې یا شادته کال، په هر صورت دا کتاب ماته څو ارزښته درلودل:

1. یو دا چې د پښتو ژبي خدمتګار عبدالرؤف رفیقی چې اوس يې د پښتو ادبیاتو په برخه کې دوکتورا کړې په اتمام خپورسوئ کتاب وو، چې د پښتو نشرحو په راغونډولو کې ما ددې کتاب تر مخه بل کتاب نه وو، لیدلئ.
2. «دپښتو نشریحې» په کتاب کې د کندهار د نورو هغه وخت دشعراؤ د نشرحو د خپریدو تر څنګ د اروابناد ملا محمد شریف جانان هغه نشرح هم ذکر سوې چې زما «قران مل» د زوکړې نیټه او ځای په نخښه کوي،
3. بل ارزښت يې دا وو چې ددې کتاب په لړ کې په پښتو ادبیاتو کې د نشریحې رول را روښانه کوي.
4. ددې کتاب په لړکې داروا ښاد ملا محمد عیسی طبیب، د کندهار ښآر دشاهي طبیلې استوګن اروابناد ملا محمد عمر اخند تر څنګ د بهاؤ الدین ذاکر نشریحې هم پکښې درج دي.

له همدې ځایه وو د ملا بهاؤلدین «ذاکر» ثم «الهام» د لیدلو سره مې تلوسه زیاته سوه ، موده پس د پښتو ژبي پیاوړی شاعر او د ټولینیزو علومو هنرمند، صوفي او قدرمن استاد حاجي احمد صمیم کندهار ته د هجرت له دیاره راکډه سو، دا وخت وو چې د طالبانو د اسلامي امارت لمړی دوره په افغانستان کې حاکمه سوې وه، داستاد احمد صمیم، قاري محمد طاهر ناتوان، استاد جمشید ناصري، ګل احمد جان او عبدالواحد منیب تر څنګ مو په لمړي ځل د محترم ملا بهاؤالدین الهام سره په کارته معلمین زمونږ په درملتون کې مجلس وسو، نوموړي په مجلس خوږ او جذاب شخصیت څښتن دی، چې د مجلس رنګ ته ځوځله نوره هم رنګیني ورکوي:

دالهام ټولنيز موقف:

د ساده پخواني کندهاري لباس او قیافې لرونکئ الهام، دټولني په رسوماتو، ادابو او کرکټرونو پوه او ددې ولس هر ډول کړه د سطحي، خو قانع کوونکي تحلیل په هنداره کې کوي چې دا هنر له ډیرو پوهانو سره نوي. له سیاست او ګوندیتوبه خلاص الهام د یوه صوفي مسلمان په توګه د بې الایشه ژوند او بی تکلیفه ډول درلودونکئ دی.

صوفیت يې :

د تصوفو د کاروان دالاروی که غلط سوئ نه وم ، د تصوفو د څلورو زریقو په برخه کې د یوې عالي طریقې صوفی مشربه مرید دی، همدا لامل دی چې نوموړئ د تصوفو په برخه کې ژور معلومات لري، او کله کله د ذکر په حلقو کې لیدل کیږي.

روانه شاعري:

د پښتو ادب په شاعرۍ پوه درونډ الهام د کندهاري شاعرانه سبک له بانبانو څخه که ونه وبولو، نو د پسپاته پیروانو څخه هم نه دی، د هغه د شاعرانه سیلابي، او بحري روانوالي تر څنګ د کندهاري شاعرانه سبک د روښانتیا هغه خپل د شعر لپاره

نـه، بلکـي شـعر د پيغـام لپـاره ليکـي، همـدا لامـل دی چـي د نومـوړي پـه شـعر کـي د ريـاليزم يـا «حقيقـت پيژنـدني» رنـګ او جولـه په اسانه او بسيطه توګه ښکاري، شاعرانه انځور يې ذهن ته لوېدونکۍ او په شعر او شاعري يې کي بلا خبري کېدلای سي.

يو ښه نعت خوان:

پخواني شعراء وايي:

حســــــــــــــن هــــــــــــــــم لکــــــــــــــــه آواز دروح غــــــــــــــــــذا ده
ځکـــــــــــه هيڅــــــــــوک مــــــــــاره نــــــــــه ســـــــــــول پـــــــــــه ليـــــــــــدو

يقينـا همـداسي ده، متعـال خـدای د ځـان او نـورو ذاتونـو تـر مـنځ تفکيـک پـه کـلي او فـردې پـه دې خـاطر خقـل کـړۍ چـي د متعـال خـدای د ازلي او ابـديتوب او د نـورو مخلوقـاتو د فنـا کېـدو درک معلـوم سي ددې تـر څنـګ يـې د مخلوقـاتو تـرمنځ فـردي تفاوتونـه هـم ددې لپـاره کـړي چـي د ټولـو مخلوقـاتو تـر مـنځ فـردي پيژندنـه پکښـي روښـانه او هـر يـو مخلـوق د خپلـو حـدودو او قروبـو پيژندنـه پکښـي وکـړي د مخلوقـاتو پـه برخـه کـي يـو هـم د واوز خـبره ده چـي د هـر يـوه انسـان اواز لـه هغـه بـل انسـان څخـه متفاوت دی ، الله پـاکي د ښـه آواز صـفت هـم د درانـه الهـام صـاحب پـه حنجـره کـي ايښـۍ ، چـي ښـه نعـت او پـر مصرۍ لهجـه ښـه دقـران کـريم تـلاوت يـې حمتـاً ژروي، مـا قـران مـل چـي د درانـه الهـام سره تـر پنځويشـت دزيـاتو کلونـو اشـنايي ده، او ډيـر وخـت مـو مشـاعدژ او ادبي بانډارونـه سره کـړي د ښـه رواني لوسـتلو او يـا هـم د قرائـت پـه لحـن د هغـه آواز اوريـدلۍ بـې تـاثره او ژړا نـه يـم پاته سوۍ.

شاعرانه ترکيبات:

پـه شـعر کـي خپـل ځانتـه مسـتقل ترکيبـات يـې ددې جوګـه دي چـي د شـعر پـه جهـان کـي يـې دالهـام شـاپيرۍ مسـتقله پـروازي وکـړي، «ملاترلـۍ مجاهـد، زرتپونـه، داصـفهان فـاتح، د نقشـبند خانقـا او....) يـې شـاعرانه ترکيبـات دی چـي مـا قـران مـل دنـورو پـه شـاعرۍ کـي نـه دي ليـدلي. هغـه پخپـل شـعر کـي د تـاريخي مـتن Narration داسي پـر ځـای کـوي چـي ليکـوال يـې د يـوه تحقيقـاتي کتـاب پـه متونـو د ريفرينسـونو او ماخـذونو پـه تثبيـت را وړانـدي کـوي، همـدا لامـل دی چـي د قـدرمن الهـام پـه شـعر کـي د کلاسـيک شـاعرانه مکتـب رياليسـتي فـورم د نـورو پـه پرتلـه د Images يـا انځورونـو پـه توګـه بيـانوي، د درانـه الهـام د شخصـيت ، شـعريت او صـوفيتوب پـه اړه کـه ږغيـرم ښـايي ډيـر نـور مـوارد هـم را وسـؤل سي . دا چـي د کنـدهار پوهنتـون دښـووني او روزني پـوهنځی د سـږ۱۴۰۱ل کـال محصـل محـترم (محمـد جـان) د خپـل مخـکښ اسـتاد درونـد سـيداحمد قـانع صـاحب پـه لارښـوونه د الهـام اړونـد د مونـو ګـراف ليکنـي تـه مخـه کـړې د پـام او تقـدير وړ اقـدام دی. پـه دې اميـد چـي نـور ځوانـانو ددې هيـواد د نومورکـو حقـدارانو پـه اړونـد همـداسي تحقيقـي کړنـو تـه مخـه کـړي. تـر څـو د خپـل غنـي فرهنـګ د اثـارو تـر جـماني يـې راتلونکو نسلونو ته کړي وي.

په درنښت

کندهار پوهنتون علامه حبيبی کتابتون

۱۹عقرب۱۴۰۱